# خالي لاسونه

ما وي دا دنيا زما ده
ما وي دا هر څه زما دي
دواړه لاسه مي خالي دي
زما هيڅ...... .........
په لاس کښي نشته

ایم طارق سحرؒ

# خالي لاسوُنه

اهل دل شه بیا د اهلو کلام لوله

چې بې دل يې بې ضمير يې پوه به نهٔ شې

ایم طارق سحر

| | |
|---|---|
| ليك | ايم طارق سحر |
| د کتاب نوم | خالي لاسونه |
| شمېر | 500 |
| بېعه | 150 |
| کمپوزنګ | حامد علي حامد کِلك کمپيوټرز لوندخوړ |
| چاپ ځائے | شاجی پریس فیصل مارکیټ مردان0300-9178557 |
| کال | 2006 |
| خورونکے | پښتو اکېډېمي پېښور يونيورسټي |
| درك | توحيد و سنت بك اېجنسي لوندخوړ |
| | کِلك کمپيوټرز ِنزد اېم-سي-بي لوندخوړ |




ايم طارق سحر او محمد شفيق

دا څۀ ځان ښودنه نۀ ده
دا يو خواب دے
دايو خيال دے
دا به ورک شي
دا به ورک شي

# تَڼرُون

" د هغو خلقو په نُومِ چې اهلِ دِل او
باضميره وي چې ښنهٔ اوبد محسوسوي "

ايم طارق سحر
لُوندخوړ

# خالي لاُسونه

"خالي لاُسونه" لكه څنګه چې د نوم نه ښكاره ده خالي لاسونه ددې دنيا په پس منظر كښې يو ډېر دردناك علامتي تركيب دې او حقيقت هم دادې چې دلته د چا لاسونه ډك شوي نهٔ دي هسې په خلهٔ او خيال وايئ خو د انسان لاسونه خالي دي او خالي به وي د طارق سحر مخكښې درې مجموعې "ددشت لاروې" "ژونديو سراب" او "يادونه او دردونه"هم په شعري ژبه او مستعار ژبه ددې ژور احساس آئينه دار دي -

په يورپي دنيا كښې "شوپنهار" نومې يو فلسفي شاعر تېر شوې دې د ژوند او ذات په حقله د "شو پنهار" هم دا خيال دې طارق سحر ته كهٔ زهٔ په خپل قلم د پښتو ادب يو " فلسفي شو پنهار" ووايم.نو دا د طارق سحر شعري او ادبي حق دې څكه چې ددهٔ په ژوند او انسان ډوب نظر دې -

"بهارونه مې ټول تبر کړل" "ډېرې داسې قافلې" "دا ټول دروغ دروغ" " تا کچه کړمه دلبره" "خالي لاسونه" ته ما بیا په غیر کښې واخله" شاهکار نظمونه دي.

خلق اوس ناز و ادا کا

خلق اوس دنیا دنیا کا

خلق اوس شو ښکلي ښکلي

خو زهٔ مړاوې مړاوې کېږم

لکه پاڼې د خزان -------------

ددې خیالونو محرکات هر څهٔ چې وي خو د ذاتي ژوند حواله ددې قسمه خیالونو یو بنیادي سبب وي خو دا یو عالمګیر حقیقت هله جوړ شي چې یو اجتماعي او کائیناتي رنګ واخلي -

ما وې دا دنیا زما ده

ما وې دا هر څهٔ زما دي

دواړه لاسه -----

مې خالي دي

زما هېڅ -------------------

په لاس کښې نشته

یا لکه په بل نظم کښې وایئ

سبا شي او ماښام شي

ماښام شي او بیا سبا شي

څوك ځي او څوك راځي

لکه رحمان بابا هم وئیلي دي چې

د رفتن او آمدن حساب ئې نشته

لکه بحر چې بهیږي بې پایان

څوك بیمار وي وکړیږي مړ شي څوك روغ رمټ روان وي ولاړ وي او ناڅاپه مړ شي چرته بچي ژاړي چرته نمسي ژاړي چرته مور چرته ښځه چرته ځوئ او چرته پلار- ددې دومره ترخو ترخو حقیقتونو ته چې سړے ګوري نو واقعي سړے حېران شي ددې اشرف المخلوقات ژوند او پایئ ته چې طارق صیب ګوري نو خود به وایئ چې-

هسې هسې وخت تېرېږي

هسې هسې ژوند تېرېږي

هسې هسې سبا کيږي

هسې هسې بېګاه کيږي

په ارمان ارمان به مړ شم

په ارمان ارمان به ورک شم

ازاد نظم د ادبياتو يو ښکلې صنف دې طارق صيب ازاد نظم ډېر په تسلسل او آهنګ کښې ليکي يو زبردست تخيل په ښکلو روانو ټکو کښې خوندور انداز کښې رانغاړي د طارق سحر ازاد نظم د ايوب صابر او سلمٰے شاهين د ازاد نظم نه کم نهٔ دې د طارق سحر هر ازاد نظم د ذکر وړ دې طارق سحر په علامتي ژبه او په مجازي ژبه دا حقيقت په ګوته کوي چې

والله الغني و انتم الفقرا " سوره محمدﷺ آيت ۳۸ " "الله غني دې او تاسو ټول فقيران يئ"

زمونږ ټول ژوند قرض حسنه دې زمونږ بصارت زمونږ

طارق سحر صيب وايئ -

ما فقير نه واوړه

ما مهٔ ازاروه ---------------------

ما ملنګ نه واوړه

ما مهٔ ازاروه ---------------

څهٔ غواړې له ما نه

زهٔ فقير د لارې ----------------

ډاکټر پروېز مهجور خوېشکے

ريسرچ آفيسر پښتو اکېډيمي

پېښور يونيورسټي

۱۳ جولائ ، زيارت

کال ۲۰۰۶

# يو څو خپلې خبرې

يو ځل بيا خالي "لاسونه" پوره شپږ کاله پس زما د ازادو نظمونو څلورمه مجموعه د قلم څوکې او د کاغذ مخ له راغله بيا ښۀ په کلکه وايم چې شاعر نۀ يم نۀ ځان ښايم او نۀ لافې اوباسم خو يقيناً کۀ زۀ نۀ وايم خو دا ليک ددې خبرې ثبوت دې چې زما د پښتو ژبې او ادب سره فطري تړون او مينه ده او داسې هم لګي چې دا ليک شاعري ده او کۀ بل څۀ خو د يو حساس زړګي اوازدے

ددې نه مخکښې د پښتو ادب د شاعرۍ په مېدان کښې زما د شاعرۍ آثار " د دشت لاروې" "ژوند يو سراب " او " يادونه او دردونه " موجود دي.

ما وې چې زۀ به ليك نۀ كوم ځكه چې په نوي دور كښې د پښتو ژبې څۀ حيثيت دي دا مونږ ته معلومه

ده څوك د پښتو كتاب نۀ اخلي نۀ ګوري او سركاري لحاظ سره هم مونږ په خپله وينو ګورو ځكه چې په پښتو كښې

ډېر ماديت نشته او خلق خو ماده پرست دي .

زما حساس او دردمند زړګي نۀ قلارېږي هر څۀ ډېر زيات محسوسوي دغه رنګ ما خپل احساسونه او دردونه يو ځل بيا د ازاد نظم " په شکل کښې په ازادانه لحاظ د " خالي لاسونه " په نوم پښتو ادب ته اوبخښل اوس راځئ چې اوګورو چې د ازاد نظم تاريخ څنګه دې ؟ او ازاد نظم څۀ ته وائ ؟

ازاد نظم د فرانس ايجاد دے په فرانس کښې ددې نوم "وير لبرے" دے لافورګ نومې سړي ددې بنياد اېښودې دے په انګرېزي ژبه کښې دې نظم ته " فري ورس " وائ انسائېکلو پېډيا برټنيکا کښې ددې تعريف داسې دے .

" ددې صنف قطعي تعريف تر اوسه مقرر شوې نۀ دې په اصل کښې ددې انداز داسې دې چې ددې جامع تعريف کول ګران دے روايتي قافيه ، بحر او ساخت چې پرېږدې او صرف د آهنګ لحاظ اوکړي شي د ازاد نظم بنياد په دې نظريه دې چې د شعر انحصار په مضمون وي ددې په

وجود او جوړخت نهٔ وي "

تاريخ ښايئ چې په عربی شاعری کښې د ۸۰۰ ھ نه مخکښې عروض نهٔ وو دغه شاعري د قافئ نه ازاده وه د هغه زمانې شاعرانو ښهٔ نمونې پرېښودې دي -

په اتمه صدی عيسوی کښې د قافئ او عروض ايجاد يو عرب عالم خليل ابن احمد کړې دے دې عالم د پخواني عرب عوامي شاعری او يوناني عروض د مطالعې نه پس عربي عروض او قافيه جوړ کړل د عرب عوامي شاعری د موزونيت په باره کښې جرجي زيدان په تاريخ اللغته العربيه کښې ليکي -

" ګمان غالب دې چې د شعر وزنونه په صحرا کښې د اوښانو د چال او تګ د زير وبم نه جوړ شوې دي او د تقطيع اصول د اوښانو د قدم موافق جوړ دي " په انګريزی ژبه کښې د غير مقفے نظم پېژندګلو ن هاورډ کړې ده هاورډ خپلې ترجمې شائع کړې دا ترجمې چې خلقو وليدې ددې اثر په ډرامه کښې او شوې - د الزبته د دور نه

مخکښې " مارلو " ددې صنف نه کار واخېستهٔ او
شېکسپيئر دا ازاد صنف کمال ته اورسوو ملټن هم ازاد
نظم اوپئلو په اردو ادب کښې دغه رنګ مولانه عبدالحليم
شرر په ۱۹۰۰عېسوی کښې خپله نامکمله ډرامه اوليکله دا
د شېکسپيئر د ډرامو په تقليد کښې ليکلې وه ـ دا په نظم
معرٰے کښې وه په اردو ادب کښې جهاد اوکړې شو په نظم
معرٰے کښې مصرعې يو هومره وي وزن او بحر په کښې
وي قافيه او رديف پکښې نهٔ وي د قافئ خلاف ډېر زيات
کوشش اوکړې شو او د نظم معرٰے نوم ورکړې شو بهر
حال د شرر دا ډرامه د ازاد نظم يو ستر رجحان وو
عبدالحليم شرر ۱۹۱۰ عېسوی کښې يوه ډرامه " مظلوم
ورجينا " اوليکله دا په دلګداز کښې اوليکلې شوه دغه شان
"سمندر" دده بل موضوع دے دا د اردو ادب اولنې نظم هم
کېدې شي دغه شان اردو ادب کښې ئې ترقي شروع کړه
نور محمد راشد او تصدق حسين خالد دې صنف ته پوره
توجه ورکړه اشتياق حسين قرېشي په ۱۹۲۷ کښې " درس

فطرت " نومې ازاد نظم اوليکلو ډاکټر محمد دين تاثير صيب ، حفيظ هوشيار پوري ، مختار صديقي ، مجيد امجد ، فارغ بخاري او ډاکټر وزير آغا وغيره وغيره ازاد نظم ليکلې دې د ازاد نظم رواج پښتو ادب کښې هم راګډ شوې دې د انګريزئ نه اردو او د اردو ادب نه پښتو ادب دا صنف خپل کړې دې کېدې شي څنې ناپوهه خلق وايئ چې ازاد نظم لا څنګه صنف دے؟

پښتو ادب کښې ايوب صابر د ازاد نظم موجد ګنړلې شي مولانا عبدالقادر ، اوچت مقصد ، د زړهٔ لوګې روايت ، او تصوير يې ښهٔ ښهٔ نظمونه دي د ايوب صابر نه علاوه نورو ګنړو شاعرانو ازاد نظم اوليکلو لکه سېدرسو رسا ، قلندرمومند ، سلمےشاهين ، محمد نوازطائر او نورو ګنړو شاعرانو په دې صنف ليك کړې دې يعني په نوي دور کښې ازاد نظم مخ په بره تګ کوي پښتو ژبه کښې هم نوي نوي شاعران په ليك کښې بوخت دي خبرې ډېرې دي خو۔

زما " خالي لاسونه " ستاسو مخکښې دې کېدې شي څهٔ

خيالونه ډېر موزون نهٔ وي خو بيا هم د پښتو ژبي او ادب د پاره يو اثر دے۔

په اخر کښې زهٔ د ډاکټر پروېز مهجور خوېشکي شکر ګذار يم چې زما په کتاب ئې ليك کړې دې۔

د الله په امان

په درناوي او مينه

ايم طارق سحر

۲۵اتوار -٦-۲۰۰٤

# اے اللّٰہؒ

اللّٰہؒ -------------

اللّٰہؒ -------------

اللّٰہؒ -------------

اللّٰہؒ -------------

څومره لوئ ئ

څومره لوئ ئ

لويه خدايه

تهٔ اللّٰہؒ ئ

تهٔ اله ئ

اللّٰه -------------

اللّٰہؒ ------------- اللّٰہؒ -------------

تهٔ معبود ئ

ته الحَي ، القيوم ئ

تهٔ خالق ئ تهٔ مالك ئ

تهٔ قادر يې ، تهٔ رازق يې

اے اللّٰه ------ اے اللّٰه ------ اے اللّٰهٔ ------اے اللّٰهٔ ------

تهٔ غفور يې تهٔ رحمان يې تهٔ رحيم يې

صفتونه ستا بې شماره

رحمتونه ستا بېسياره

تهٔ قهار يې تهٔ جبار يې

العزيز يې ـ الحكيم يې

العليم يې الخبير يې

السميع يې ، مصور يې

اے اللّٰهٔ ------ اے اللّٰهٔ ------ اے اللّٰهٔ ------اے اللّٰهٔ ------

الودود يې الوهاب يې

الغني يې المغني يې

الستار يې المقسط يې

الحبيب يې الشكو رې

شاكر تهٔ حبيب تهٔ يې

اے اللّٰهٔ ------ اے اللّٰهٔ ------

القوي المتين ---------------

التواب -------------------

تهٔ اللّٰهٔ يې تهٔ اله يې

لويې نظام دې څنګه جوړ کړو ؟

عرش دې بره

فرش دې خور کړو

اسمانونه دې پيدا کړل

نمر سپوږمۍ دا ښکلي ستوري

چراغونه ښکلي ښکلي

نهٔ زړيږي نهٔ غورزيږي

نهٔ وړيږي ، ستړې کيږي نهٔ کميږي

د مودو راسې دا بل دي

نهٔ مړهٔ کيږي

ددې خاورې دې پيدا کړل

قسم قسم خوراکونه

ددې خاورې دې پيدا کړل عجيبه عجيبه غرونه

ددې خاورې دې پېدا کړل

قسم قسم وجودونه

ددې خاورې دې روان کړل

ښومره لوې لوې دریابونه

هواګانې دې پېدا کړې

په هر لوري دې خورې کړې

یا اللّٰهٔ ---------- یا اللّٰهٔ --------- یا اللّٰهٔ ------------

اے اللّٰهٔ ، ښومره لوې ئ ښومره لوې ئ

تعریفونه دې ډېر زیات دي

یا اللّٰهٔ -----------------------------------

زهٔ ناتوان یم له وئېلو

یا اللّٰهٔ ---------- یا اللّٰهٔ --------- یا اللّٰهٔ ------------



## اے رسوله ﷺ اے رسوله ﷺ

اے رسوله ﷺ --------------

اُمتيان دې ټول په ګډو وډو سر دي

او ته ئې په مدينه کښې ---------------

او ته ئې به مدينه کښې ---------------

عرب دي که عجم دي

واړهٔ دي او کهٔ لوې دي ، نران دي کهٔ زنان دي

د مشرق کهٔ د مغرب دي

د واړو وار خطا دي

ګودر ترې نه خطا دي

منزل ترې نه خطا دي

په سترګو ئې پردې دي

ستا خبرې ئې دي هېرې

دنيا ئې اسره کړې

په کند کښې د مغرب دي ښهٔ خوشحاله

ددوي چارې ئې خوښې
ددوي لارې ئې خوښې
ئې ستا نه لاس اخېستي
دا په دوي باندې څۀ چل دې؟
په ګډو وډو سر دي
په نوم دې اُمتيان دي ، دا مې واوره
په نوم مسلمانان دي
دنيا ئې لوې مقصد دې
دنيا ئې لوې منزل دې
انتها ماده پرست دي
انتها مغرب پرست دي
يا رسوُلهﷺ ---------
يا رسوُلهﷺ ---------
هغه هوش ترې نه خپل تلې
هغه رنګ ترې نه خپل تلې

هغه روح ئې دې مړ شوې

د کفر غلبه ده

کافران دې ښاماران دي

دین ئې ستا لوګې لوګې کړو

مذهب ئې ټول پوهکې کړو

خدایه خیر

خدایه خیر

خدایه خیر

یا رسوله ﷺ ----------------

یا رسوله ﷺ ----------------

ټول په ګډو وډو سر دي

ټول په ګډو وډو سر دي



# خالي لاسونه

ژونده لاړې ، ژونده لاړې
څهٔ حاصل شو؟ څهٔ حاصل شو؟
هېڅ هم نشته
تش یو باد دې چې تېرېږي
د ټول عمر همتونه
د ټول عمر کړاونه
د ټول عمر ، ټول فکرونه
هېڅ هم نهٔ شو ، هېڅ هم نهٔ شو
صرف ستړې ترې حاصل شوه
ستړې ستړې مې خیالونه
ستړې ستړې مې فکرونه
دواړه لاسه مې خالي دي
زهٔ خالي لاسونه ځمه ----------
زهٔ خالي لاسونه ځمه ----------

# ټولې مزې لاړې

زما زړګیه تهٔ خو داسې نهٔ وې
هغه سکون دې څهٔ شو؟
هغه ارام دې څهٔ شو؟
ټولې مزې لاړې
ټولې چرچې لاړې
همه خوندونه ورك شو
همه خوبونه ورك شو
زما زړګیه
ډېرو غمونه ډوب کړې
ډېرو دردونو ډوب کړې
هر خوا ته غم غم دې
څهٔ شو ارام زړګیه؟
څهٔ شو آ ، خوند زړګیه؟
ټولې مزې لاړې
ټولې چرچې لاړې

# ساړهٔ ساړهٔ

هر څهٔ دي خفه خفه
هر څهٔ دي ساړهٔ ساړهٔ
خوند په ژوند کښې نشته دې
ژوند په زړهٔ کښې نشته دې
شرنګ په خيال کښې نشته دې
څهٔ کښې راحت نشته دې
څهٔ کښې سکون نشته دې
هر څهٔ دي سپېرهٔ سپېرهٔ
غوږ په څهٔ کښې نشته دې
هر څهٔ دي ويران ويران
هر څهٔ دي خفه خفه
دا يو حقيقت د ژوند
هر څهٔ دي ساړهٔ ساړهٔ

# هغه سترګې مې ړنديږي

هغه سترګې مې ړنديږي

هغه سترګې مې خوږيږي

هغه سترګې مې پټيږي

محبوبا ليدو له راشه ، محبوبا ليدو له راشه

هغه سترګې مې خوږ شوي

هغه سترګې مې زخمي دي

داسې ډېرې دي رنځورې

په طبيب هم نهٔ ښهٔ کيږي

نن مې ټوله دنيا ورانه

مې د مينې دنيا ورانه

بيا په مينه مينه ګرته

آ خوارهٔ ليدل به ګرته

آ خوره خندا به ګرته

هغه سترګو کښې تيارهٔ شوه

مې له سترګو رڼرا لاړه

مې له سترګو ښکلا لاړه

بیا به ښکلې دنیا چرته

بیا به ناز و ادا چرته

په تیارو کښې به زۀ ډوب شم

په تیارو کښې به لاهو شم

محبوبا ! لږ خوا له راشه

اخري لیدو له راشه

ښکلے سترګو کښې تیارۀ شوه

مې د مینې دنیا ورانه

مې د مینې دنیا ورانه



# دا دردوُنه نهٔ ښهٔ کېږي

دا زخمونه نهٔ ښهٔ کېږي

دا داغونه نهٔ ورکېږي

زهٔ خوُږ شوې له ازله

زهٔ داغلې له ازله

زهٔ دردمند يم له ازله

دا دردونه مې نصيب دي

فريادونه مې نصيب دي

دا غمونه مې نصيب دي

ژوند مې غم دې

ژوند مې درد دې

خوشحالي کهٔ لټومه

خوشحالي مې ژوند کښې چرته

مې خندا نهٔ راځي

زړهٔ ته ،

مې يو درد دې په ذړګي کښې

نهٔ ښهٔ کيږي نهٔ ښهٔ کيږي

ما به مړ کړي ما به مړ کړي

ما به مړ کړي ما به مړ کړي

دا دردونه نهٔ ښهٔ کيږي



# د ماضي نه ډېر يرېږم

د ماضي نه څوك يرېږي؟
و ماضي و ته چې ګورم
زۀ ماضي نه ډېر يرېږم
د ماضي نه سبق اخلم
هر څۀ دي په تېر ماضي کښې
خزانے دي د يادونو
خزانے دي د علمونو
خزانے دي د فکرونو
خزانے دي د فنا
خزانے دي د بقا
ماضي هر څۀ فنا کړي

ماضي هر څۀ دي خوړلي

ماضي هر څۀ محفوظ کړي

هر څۀ دي په تېر ماضي کښې

ورځو شپو ما سره څۀ کړۀ

ورکوي مې

دردوي مې

زړوي مې

ژړوي مې

کوم چې تېر شي نۀ هېرېږي

دا د ننه رنګ پېدا کړي

دا دننه خمار راوړي

هر څۀ دي په تېر ماضي کښې



## موري ! ته ما بيا غېږه کښې واخله

اے مورے ته خو لاړے ! اے مورے ته خو لاړے !

بې نوا کړمه دې خلقو

زهٔ پرېشان کړمه دې خلقو

ډېر بدنام کړمه دې خلقو

زهٔ پردے کړمه دې خلقو

زهٔ تنها کړمه دې خلقو

هېڅ ګناه نه خبر نهٔ یم

ګناهګار کړمه دې خلقو

تهٔ زما د روح آرام وے ، تهٔ زما د زړهٔ ټکور وے

تهٔ زما د ژوند راحت وے

تهٔ زما د ژوند عزت وے

تهٔ زما د ژوند حکمت وے

تهٔ زما د ژوند خوراك وے

تهٔ پرده مې د وجود وے
بې پردې کړمه دے خلقو
ټول رازونه مې ښکاره شول
ورې ترې شوم چې نهٔ ئ
هر يو وخت راته ولاړه
هر يو وخت کښې مې يادېږې
خوشحالي زما د زړهٔ وے
اوس مې غم په زړهٔ کښې اوسي
تش غمونه دي غمونه
اے مورې ! اے مورې !
دا چې تهٔ مې خوا کښې نهٔ ئ
نو ټول خلق تار په تار شول
ټول نزدې شو رانه لرې
مخ ئ بل طرف ته واړۀ
زۀ !

زۀ خو نۀ يم بدل شوے

خدائيگو هغه يم چې وومه

شوه دنيا ټوله بدله

ډېر غريب شومه چې نۀ يُ

ډېر خفه شومه چې نۀ يُ

ډېر تنها شومه چې نۀ يُ

ټول کور دې خوشې کړې

هر يو وخت دې خفه کړې

اے مورې ------------------

اے مورې ------------------

راشه بيا مې غېږ کښې واخله

ټېر وختونو له مې بوځه

تۀ مې بيا لمن کښې پټ کړه

هغه مينه راله راکړه ، هغه رحم راله راکړه

خوشحالي مې خپله راکړه

دلته ---------- بې له تا دلته ژړېږم

بې له تا دلته خورېږم

دا ژوندون ماته ډېر ګران دے

چې دا روح مې شي قرار

چې دا تن مې شي قرار ·

ته ما بيا په غېږ کښې واخله ----------

ته ما بيا ---------------

لمن کښې ---------------

پټ کړه ---------------------



# ښکلي ښکلي مې جانان

ښکلي ښکلي يئ مسکا

توري زلفې د جانان

ښکلې ښکلې يئ چشمان

کهوريئ کهوريئ سترګې

او پاستهٔ پاستهٔ لبان

په مسکا مې خوا له راشي ، په خندا مې خوا له راشي

د خفه زړهٔ مې درمان

ډېر په مينه مينه راشي

د ښائسته وجود جانان

کله خوا کښې زما کښېني

په خندا او مينه مينه

تن او روح مې کړي قرار

يو نظر چې باندې پرېوزي

دروازې --------------

د زړهٔ مې خلاصے

ډېر ښائسته مې دې جانان

څومره خوږ مې دې جانان ، څومره ښکلې دې جانان

ښکلې ښکلې مې جانان



# خدایه

ځوك وي خوار و زار
و ملنګان
کرځي
ه کوځو کښې د ډوډۍ ټوکونه غواړي
ځوك دي در په در خاورې په سر
ځوك دي بې نوا
و رسوا شوي په کوځو کښې
ر در ته ولاړ کوي سوالونه
خپتې حیران کړي
چې په کومه لوري لاړے
ا ځنګه دنیا ده؟
ځوك په څو پېسو باندې -----------
ځوك په څۀ اسره باندې ---------
رې ذري وجود کړي
خپل ژوند باندې ستومانه
ه دنیا وي سترې سترې

ځوك ګرځي په هوا كښې
تكبر كښې
په ډېر ناز كښې
د خيال په كوځو سر وي
د هوا سره خبرې
ځوك ستړې ستومانه له دنيا
او ځوك په پالنګونو كښې تنګ شوي له آرامه
ځوك لوړ او ځوك اوچت شو
او
ځوك ځي د زمكې تل ته،
ځوك سپك او ځوك درانهٔ دي
ځوك وړي ځوك ماړهٔ دي
اے خدايه -------------
اے خدايه -------------
اے خدايه -------------



# خالي لاسونه

مينه مينه مې كوله

مينه مينه په خلهٔ وايم

مينه مينه مې په زړهٔ كښې

تمامي عمر مې تېر كړو

د جانان په طمع طمع ، دجانان په مينه مينه

وايم دا به مې جانان شي

وايم دا به مې جانان شي

مينه مينه زړهٔ كښې چرته ؟

ده وفا په زړو كښې چرته ؟

جانان ------------------

كړي د وخت سره خبرې

وي بې وخته جانان چرته

زړهٔ زما ذرې ذرې شو

مې خيالونه لېوني شو

د بې دردو په دنیا کښې

د نا اهلو په دنیا کښې

وفا کوم ده ؟

مینه کوم ده ؟

جانان کوم دے ؟

وفا چرته ؟

هېڅ حاصل نهٔ شو په مینه

زړهٔ چاودون زما نصیب شو

پښېمان شومه په مینه

زهٔ " خالي لاسونه " پاتے

زهٔ " خالي لاسونه " پاتے

تمامي عمر مې تېر شو

تمامي عمر مې تېر شو.



# ځي ---- ځي ---- ځي ----

دلته اوسېدل غواړي

دا ځایَ د اوسېدو نهٔ دے

تهٔ خو ایسار یې

خو دا ځائے د اودرېدو نهٔ دے

اوګوره لږ مخکښې

په صدو صدو عمرونه دي تېر شوي

پام اوکړه لږ مخکښې

په لکونو

په کروړونو ورځې تلي

خو څوك هم پاتې نشته

همه ټول خلق دي تلي

هغه ټول دي خاورې شوي

ژوند ، لا څنګه ژوند دے ؟

دا ورځې به تېرې شي

دا مزې به تېرې شي

ژوند يو هوا ده چې تېرېږي

ژوند خو تش يو خواب دے

ژوند خو تش يو خيال دے

ژوند د اوبو تګ دے

ژوند اوبۀ ، اوبۀ دے

سم بهيږي

بيا راستنيدې نۀ شي

ځي ---------- ځي ---------- ځي -----------

ژوند مې لا په ښکته ځي

ژوند مې لا په ښکته ځي



# محبوبا ځما نه څۀ شوې

محبوبا ! ځما نه څۀ شوې؟

محبوبا ! ځما نه څۀ شوې؟

تۀ په کومه لوري لاړې؟ ----------

بيا رانغلې ما د پاره

لاړې ! لاړې لاړې لاړې --------------------

ډېر بې وخته رانه لاړې -------

محبوبا ځما نه ورك شوې

د زړۀ کور مې خوشې خوشې

د زړۀ کور کښې مې تيارۀ ده

چې دې

مينه نۀ کوله

نو خندل دې راته ولې؟

چې ژوندون دې دلته نۀ وو

نو وعدې دې ولې کړلې؟

تا خو کړې رانه بار کړې

چې دې مينه نهٔ کوله ، زهٔ دې پرېښودم يوازے

نو زخمي دې کړمه ولې؟

ولې ! ولې ! محبوبا !

ولې ! ولې ! محبوبا !

چې راياد شې نو ژړېږم

چې راياد شې نو خورېږم

خو تهٔ نهٔ يې محبوبا !

ستا د مخ ښکلې ښکلا

ستا د خلې ښکلې خندا

ستا د سترګو سپين او تور

ستا خوږه خوږه ادا

ستا خوږه خوږه وفا

ستا خوږې خبرې ، او ستا مينه مينه مينه

څهٔ شوه څهٔ شوه محبوبا ، څهٔ شوه څهٔ شوه محبوبا

راشه ! راشه ! محبوبا

ستا د مينې نه بغېر

مې تيرې دي په زړګي

ستا د مينې نه بغېر ------------

ژوندون نۀ راځي په بيرته

نۀ ځواني راځي په بيرته

څوك چې لاړ شي هغه تلي

څوك چې ورك شي هغه ورك وي

خو

لږ راشه ما د پاره

لږ تپوس د زړۀ مې اوکړه

ننداره کړه خپل جانان

محبوبا ځما نه خۀ شوې ، خوا له راشه محبوبا !

خوا له راشه محبوبا ------------



# بهارونه مې ټول تېر کړل

خلق اوس د ګل غوټۍ شوې

خلق اوس بوټي

د باغ

شو ---------------

مالیار کرخې ترې چاپېره ---------------

خلق اوس تر و تازه شو

شوی غنچې د سرو ګلونو

د ګلونو نه سا نسته وي

د هوا سره خبرې

د مستۍ سره خبرې

خلق اوس شو ښکلې ښکلې

خلق اوس ډېره خندا کا

خلق اوس ډېره ښکلا کا

خلق اوس ناز و ادا کا

خلق اوس دنیا دنیا کا

نوي نوي خلق راغلل

نوي نوي راپيدا شول

خلق اوس شو ښکلي ښکلي

خلق اوس وفا وفا کا

خو زه مړاوي مړاوې کیږم

لکه پاڼې د خزان

آه

مستي زما نه لاړه

او ځواني زما نه لاړه

خپل ښائست زما نه ورك شو

د خندا نه مې غم جوړ شو

مې زړګي خفه خفه وي

مې جولۍ د غم نه ډکه

او

جذبې مې ټولې مړې شوې

مخ لاسونه مې ټول ګونجي

خیل وارونه ------------

مې ټول تبر کړل

خزانونه مې ټول تبر کړل

بهارونه -----------

مې ---------------

ټول تبر کړل

او زه لاړمه په بسکته -------------

دې دنیا ته چې زه ګورم

پرېشان شم پرېشان شم

یو ارمان شم ، او یو آه شم



# ډیرې داسې قافلې

خدایه خېر کړې

خدایه خېر کړې

دا وختونه ،

مې په کومه لورې بیایۍ

کله واګې مې شپه واخلې

کله ورځ

لکه ساربان مې مخکښې بیایۍ

زه د یو لورې نه راغلم

بل ته ځمه --------------

څه مطلب ددې راتلو شو

چې بیا ځمه -----------

عجيبه غوندې چل ول دي

دا وختونه غلې غلي

ما د ځان سره

بوځي په بله لوري

زۀ يرېږم له وختونو ډېر يرېږم

چې

نن يو څۀ -----------------

سبا بل څۀ ------------

دا بدلون ، تغير نۀ دي

دا فنا ده -----------

دا فنا ده -------------

وخته څۀ کړې وخته څۀ کړې

دا ژوندون دے

کۀ څۀ بل څۀ ؟

داسې ړېرې قافلے

تا مخکښې بوتلے

نۀ ئ ساز شته --------

نۀ سامان شته --------

ټول دې ورك کړل

ټول دې څۀ کړل

اے وختونو ---------

اے وختونو -------------

ما به هم هغسې ورك کړې

ما به هم هغسې ورك کړې



# لا تر اوسه جانان نشته

زمانې شوې غم کښې تېرې

تۀ تر کومې به خفه يې

ته تر کومې به دردېرې

اے زړګيه ---------

بس که ----------

بس که ----------

ستا د عمر مازيګر شو

ستا د عمر نمر پرېوتے

لا تر اوسه جانان نشته

لا تر اوسه تخيل کښې

په ټالو ټالو تۀ ځانګې

لا تر اوسه

ستا جانان جانان په خلۀ دے

بس که ----------

بس که

جانان نشته

د دنیا غمونه زیات دي

هسې نه چې ---------

ځان دې بائیلي

نهٔ محبوب شته -----------

نهٔ جانان شته ------

دا د خلقو دي خبرې

دا دي هسې دي خبرې

ټول عمري دې -----------

د خیالونو په کوڅو کښې

هسې ځان کړو ستړې ستړې

بس دې صبر شه زړګیه

جانان نشته ---------

آرام اوکړه -----------

راحت اوکړه ---------

هسې هسې تهٔ دردېږې

هسې هسې تهٔ خوږېږې

يو جانان نشته ---------

دنيا کښې -----------

چې مې لاس په لاس کښې واخلي

چې مې اوګنډي زخمونه

ژوندون ټول دې غم کښې تېر کړو

تهٔ تر کومې به خفه يې

لا تر اوسه جانان نشته



# تنګ نظر او سپك نظر

ولې راته سپك ګورې ؟

ولې را ته خوار ګورې ؟

زۀ د خدایۀ بنده یمه

زۀ د خدایۀ انسان یمه

په تنګ نظر مې مۀ ګوره

په خوار نظر مې مۀ ګوره

ولې داسې سپك ګورې ؟

څۀ ګناه مې کړې ده ؟

اووایه ------------ اووایه ---------- اووایه -----------

ولې داسې سپك ګورې ؟

ښځپله به تۀ سپك شې -----------

دا دنیا فاني ده

دا وختونه نۀ راځي

دلته لږ وختونو له ---

لږو ورځو شپو له ----------

راغلم ------------ راغلم -----------

مړ به شم --------------

مړ به شم --------------

نۀ به يو ------------

نۀ به يو ------------

سپك نظر تۀ مۀ كوه

خوار نظر تۀ مۀ كوه

چرې به هم را نۀ شو

بيا به مې اونۀ مومې

راغلو لړ وختونو له

وركېږو به ------------

وركېږو به ------------

فنا به شو ----------------

فنا به شو ----------------

هېڅ به شو -----------------

هېڅ به شو -----------------

راغلو لړ وختونو له



# مسافرو مقبره کښې

تهٔ خس يې

تهٔ خاشاك يې

غاړې ته به ځې

په غاړه به اودرېږې

په غاړه به اوسېږې

په غاړه به دې کور وي

چرته خټې -----------

او چرته خوړ کښې

حجره کښې هم په غاړه

جومات کښې هم په غاړه

دفتر کښې چرته غاړه

باهر کښې چرته غاړه

خپلوۍ نه دې اوباسي

قطار نه دې اوباسي

خبره دې خوك نه اوري

تش يۍ لكه مزدور

تۀ يۍ لكه مهتر

په حسن كۀ يوسف شې

په حكمت كۀ تۀ لقمان شې

بولي دې ناپوهه

په سپك نظر به گوري

په شك به درته گوري

حېران به درته گوري ---------

كركه ---------------

كركه ستا ده

عزت ،

مينه د مالدارو -------------

تۀ خس يۍ

تهٔ خا شاك ئ

يه هوا ، هوا ، روان ئ

په مرګ هم چرته غاړه

مسافرو مقبره کښې -----------

لا وارثو په کها ته کښې ------------

کور کلې دې په غاړه

قبر هم په غاړه

ځائ دې چرته غاړه

نصيب دې غاړه غاړه

ولې ؟ ولې ؟ ولې ---------- ؟

دا ځکه چې غريب ئ

دا ځکه چې غريب ئ

# بې وفا بې وفا

تا خو زړهٔ زما نه وړې

ما لیدو د پاره راشه

تا خو زړهٔ زما خوږ کړې

هېڅ مې پام نهٔ کړې زړګي ته

رانه لرې لرې اوسې

تا خو زهٔ ذرې ذرې کړم

تا خو زهٔ لوګې لوګې کړم

چې مې

حال د مینې ووېٔ

محبوبا ----------

محبوبا -----------

نو جدا زما له خوا شوې

ځما مینه دې کړه هېره

اشنا سترګې دې نا اشنا کړې

ا ځواني به زمونږ نهٔ وي

ا جذبې به زمونږ نهٔ وي

ا بهار به زمونږ نهٔ وي

اوس مو ورځې دي د مينې -----------

ما ته څهٔ پته د تا وه ---------

چې به ما سره تهٔ داسې

بې وفا ، بې وفا کېږې

محبوبا ------------

محبوبا ------------

زما فکر کښې تهٔ اوسې

زما ذهن کښې تهٔ اوسې

تهٔ زما د ژوندي سر يې

تهٔ زما د زړهٔ دلبر يې

خو تهٔ نهٔ راځې دلبره ؛

خو تهٔ نهٔ راځې دلبره ---------------- ؛

جدای کښې دې زهٔ ژاړم

په ژړا باندې دې سر کړم

داسې مهٔ کړه --------------

داسې مهٔ کړه --------------

محبوبا ------------------ ؛

محبوبا ------------------ ؛

محبوبا ------------------ ؛

محبوبا ------------------ ؛



# تا کچه کړمه دلبره ؛

تا خو هسې مې زړهٔ يوړو -------------
دلبري راسره نهٔ کړې
اشنائي راسره نهٔ کړې
تهٔ ياري راسره نهٔ کړې
زهٔ پوهېږمه دلبره ؛
ستا زړګي باندې پوهېږم
جداې کښې مې زړهٔ سېزې
په اورونو کښې مې سېزې
هسې هسې مې دلبر ې
هسې هسې دې لوګې کړم
ستا په زړهٔ کښې مينه نشته
تهٔ په خلهٔ هسې خندا کړې
ستا په زړهٔ کښې اخلاص نشته
اوس کهٔ هر څهٔ هر څهٔ واې
ماته پته ده دلبره ؛
رامعلومه شوه ستا مينه

تا خو هسې مې زړۀ يوړو
تا د مينې قدر نۀ زده
تا زما قدر او نۀ کړو -----------
دا چلونه تا له نۀ زده
تا کچه کړمه دلبره ؛
تا پيکه کړمه دلبره ؛
زۀ دهوکه شومه دلبره ؛
بيا به نۀ کومه داسې
زما مينه دې ستې کړه
زړۀ دې هسې رانه يوړو
دلبري راسره نۀ کړې ----------
اشنائي  راسره نۀ کړې ---------
تۀ ياري راسره نۀ کړې ---------
تۀ ياري راسره نۀ کړې
دلربا ---------- !
دلربا----------!
دلربا ---------- !

# اے محبوبا !

تهٔ خو جدا شوې
ځان له به بل ، محبوبا ګورم
ستا جدائي
او
ستا هجران
راته ډېر ګران دي
ستا په خيالونو
ستا په يادونو
مې زړهٔ خوږېږي
ځان له به بل محبوبا ګورم
ريښتينې مينې ------------
پورې خندا ----------------
دې راله اوکړه
تا هيڅ پرواه زما اونهٔ کړه
تهٔ لاپرواه شوې
رانه جدا شوې
او د بل چا شوې
تا مې په زړهٔ توره تيارهٔ کړه

خیر دے ---------------- خیر دے ----------------

اے محبوبا --------------- !

بیا به ارمان کړې

ځما د مینې

ما یادوې به خو زهٔ به نهٔ یم

ځان له به بل محبوبا ګورم

مینه په سوال په منت نهٔ شي

اے محبوبا -------------

چې ستا نا خوښه

ځما نا خوښه

اے محبوبا ------------

لاړې جدا شوې

لاړې جدا شوې

ځان له به بل محبوبا ګورم



# نهٔ پوهیږې دلربا !

نهٔ پوهیږې ، نهٔ پوهیږې دلربا !

نهٔ پوهیږې ، نهٔ پوهیږې دلربا !

تا مې کور د زړګي وران کړو

تا مې روغ زړګې تالا کړو

تا مې خونه کړه ویرانه

زندګي دې رانه یوړه

خوشحالي دې ما نه یوړه

په غمونو دې اخته کړم

په دردونو دې اخته کړم

سوّدائي دې رانه جوړ کړو

په خیالونو په سوچونو کښې دې ډوب کړم

لیونې دې کړم محبوبه ! ----------

لیونې دې کړم محبوبه ! ----------

تا مې خوند د زړګي ورک کړو

تا مې خوند د ژوندون ورک کړو

بې وفا ---------

بې وفا ---------

نۀ پوهېږې دلربا !

تۀ زما ئې محبوبا !

لا پروا ---

لاپروا ---

تۀ لوئې چارې -----

زۀ فقير يم

ستا نه لرې

ستا په مينه کښې رسوا

لوئې مۀ کړه محبوبا

دا وارونه به دې تېر شي

عاجزي کړه دلربا

لږ نظر کوه په ما

نۀ پوهېږې ، نۀ پوهېږې دلربا !

نۀ پوهېږې ، نۀ پوهېږې دلربا !



# نهٔ دې راځي

تهٔ ګیلې له جانان مهٔ کړه

تهٔ شکوې له جانان مهٔ کړه

زړګیه ! مهٔ یادوه ----------

دا بې وفا جانان دې مهٔ یادوه

نهٔ دې راځي ---------

جانان دې نهٔ راځي

صبر شه ، صبر شه زړګیه !

ورته منت مهٔ کوه

نهٔ ورنه مینه غواړه

زړګیه ورانه بنهٔ ده

زړګیه داسې بنهٔ ده

جانانه ! داسې بنهٔ ده

مهٔ راځه ----------------

مینه خو داسې نهٔ وي

جانانه ! داسې ښهٔ یم

ځان له یوازې ښهٔ یم

دا خپله مینه ډېره ---------

دا خپل غمونه مې بس

دا خپل ژړګې مې دې بس

خبرې مهٔ یادوه

جانان دې مهٔ یادوه -

داسې جانان دې کړه هېر

څنګ چې يې تهٔ هېر کړې

نهٔ دې راځي ----------------

جانان دې نهٔ راځي -----------

# دا ټول دروغ دروغ

چې پېدا شي څهٔ به اوکړي

چې پېدا دي څهٔ يې اوکړل ، همه واړه ځي فنا ته

چې پېدا نهٔ وي نو ښهٔ وه

دې دنيا کښې هڅو وې نه ، ډېره ښهٔ وه

دلته څهٔ دي ---------؟

دلته څهٔ دي ---------؟

دا څنګه زندګي ده --------؟

نهٔ خوند او نهٔ مزه شته

يو سر بلا غمونه

نهٔ خوند او نهٔ قرار شته

يو زړهٔ سل تلوسې دي

يو زړهٔ سل وسوسې دي

دا څنګه زندګي ده ---------؟

ما څهٔ اوموندل دلته ------------------؟

چا څهٔ اوموندل دلته -------------------؟

دا هسې يو فرېب دې

دا هسې زړهٔ چاودون دې

دا هسې دي رنګونه

دا هسې دي خيالونه

ما وې زندګي ټوله ------------

ما وې هر څهٔ زما دي

ما وې چې زهٔ به يمه --------------

خو دا ټول دروغ دروغ -----------------

خو دا ټول دروغ دروغ -----------------

دا هېڅ هم د چا نهٔ دي

دا زندګي څهٔ ده ------------ ؟

دا دنیاګی څهٔ ده ----------- ؟

ژوندون خو لږ ساعت دې

نن یو سبا به نهٔ یو

دا هر څهٔ د بل چا --------------

نن یو سبا به ځو

مطلب ددې نه څهٔ ؟

راځي او بیا ترې ځي

راځي او بیا ترې ځي -------



# تا زۀ ترېِ ترېِ بوتلم

زۀ به څۀ د تا ارمان کړم

زۀ به څۀ د تا افسوس کړم

تا خو عقل راته اوښود

تا مې سترګې کړلې وازې

بيا به څه د تا ياري کړم

بيا به څۀ د تا نوم واخلم

تا دا څۀ راسره اوکړۀ

خلق نۀ پرېږدي --------

د لارې مسافر ----------

څۀ وختونه دوي سفر کړي

زۀ تا هسې بې نوا کړم

تا زۀ ترېِ ترېِ بوتلم

له جيحونَ

او له سيحونَ نه ----------

ما د زړۀ په کتاب اوښکل

ستا د مينې داستا نونه
ستا د هجر ستمونه
ستا خبرې ستا فراق
راسره به وي تر عمره ------------
ستا د مينې دا كتاب
ستا د هجر هر يو باب
زۀ به يې وايم كله كله ----------
يادوم به يې كله كله -------------
زۀ به څۀ په تا يقين كړم
تا خو داسې سبق راكړو
چې مې هر څۀ ترې نه زده كړۀ
يو يو حرف به راته ياد وي
واوره ، واوره محبوبا !
واوره ، واوره محبوبا !
زۀ به څۀ د چا ارمان كړم
زۀ به څۀ د چا افسوس كړم

# هر وخت بیماره

ځما زړهٔ دې بې قراره

ځما زړهٔ هر وخت بیماره

محبوبا ----------------------

محبوبا هر وخت یادېږې

مې په زړهٔ دننه اوسې

زړهٔ مې ستا پسې ژړیږي

زړهٔ مې ستا پسې خوږیږې

زهٔ اوباسمه ترې مینه

ترې اوباسمه خیالونه

زهٔ خو وایمه چې ښهٔ شي

خو ----------------------

دا زړهٔ مې نهٔ ښهٔ کیږي

د یادونو نه مې نهٔ ځې

د خیالونو نه مې نهٔ ځې

لاړ شه ------------- !

لاړ شه !

چې آرام کړم

هسې هم نهٔ راځې خوا ته

د خیالونو څهٔ جوړېږي

له یادونو څهٔ جوړېږي

زهٔ طبیب ورپسې ګورم

په طبیب هم نهٔ ښهٔ کیږي

زړهٔ مې هسې رنګ بیمار دې

زړهٔ مې هسې ناقرار دې

له دنیا ئ کړمه ځان له

له جهان ئ کړمه ځان له

جوړ --------------

رنځور د زړهٔ په سر یم

نهٔ ښهٔ کیږم -------------------

نهٔ ښهٔ کیږم -------------------------

محبوبا -----!

محبوبا -----!



# ما له آرام راوړه

تا خو زړهٔ ځما نه وړې

تا سکون ځما نه وړې

تا آرام ځما نه وړي

ستا په مینه کښې زړهٔ ستړې

ستا په مینه بې مجاله

ستا په مینه کښې بدحاله

ما له آرام راوړه

ما له سکون راوړه !

ځما زړهٔ خو داسې نهٔ وو -----------

دې د پاره مینه نهٔ وه

چې زړګې ځما خفه شي ، چې زړګې ځما شي ستړې

اے محبوبا --- !

ډېرې مزې لاړې

ډېرې چرچې لاړې

زړګې مې روغ وو

روح مې خوشحاله

خبر د هېڅ نه نهٔ وم

غمونه لرې لرې -------------

دردونه لرې لرې

اے محبوبا ------------

تا خو غمژن کړمه زهٔ

تا خو دردمند کړمه زهٔ

تا کړمه سترې سترې --------

تا مې آرام يوړو ---------

تا مې سکون يوړو --------

دومره خبرې خو ما نهٔ پېژندې

دا ما ته پته نهٔ وه

دومره بارونه --------

خو ما نهٔ شو وړلے

اے محبوبا !-------!

اے محبوبا -----------

تهٔ مې د مینې نهٔ یې

زړګې ساتلې نهٔ شې

مرهم هم ږدلې نهٔ شې

هسې دې زړهٔ وړې دې

ماله ----- زړګې روغ کړه ------------

ماله آرام راوړه

ماله سکون راوړه



# کۀ تۀ راچانړ کړي

ورځې شپې د شمار دي ، ورځې شپې د شمار دي

دا تۀ څۀ کړي ؟

محبوبا ----------

وخت --------

تېرېږي مو د میني

بیا به نۀ وي ---------

مې دا ښکلي احساسونه

بیا به نۀ وي -----------

مې د زړۀ دومره موجونه

بیا به نۀ وي -----------

مې دا سترګې څراغونه

بیا به نۀ وي ---------

مې د زړۀ دا ارمانونه

ورځې --------------

به تېرې شي

شپې به تېرې شي

زړهٔ کښې تيارهٔ ------ به شي

محبوبا --------------

محبوبا---------------

وختونه لږ دي ---------

رانه تېريږي -------------

ډېر رانه تېر شو

فراق ، فراق کښې -------------

هر څهٔ زاړهٔ به شي

خوندونه ورك به شي ----------

ځوانی به ورکې شي ----------

ما به او نهٔ مومې ----------

په ټول جهان کښې ----------

کهٔ تهٔ غلبېل کړې ، کهٔ تهٔ راچاڼ کړې

دا ټولې خاورې ------------

زهٔ -------- به ------- نهٔ -------- يم

زهٔ -------- به ------- نهٔ -------- يم

دا وخت به تېر شي

بيا به مونږ چرته ؟

بيا مينه چرته ؟

اے محبوبا ------------ اے محبوبا ----------------

ما به او نهٔ مومې ----------

په ټول جهان کښې ----------

کهٔ تهٔ غلبېل کړې ، کهٔ تهٔ راچاڼ کړې

دا ټولې خاورې ------------

زهٔ --------- به -------- نهٔ --------- یم

زهٔ --------- به -------- نهٔ --------- یم

دا وخت به تېر شي

بیا به موږ چرته ؟

بیا مینه چرته ؟

اے محبوبا ------------ اے محبوبا -----------------

# د بالاکوټ او د کشمیر زمکې !

چرې چمن چمن وې

چرې ګلشن ګلشن وې

چرې ابشار ابشار وې

چرې بهار بهار وې

چرې خمار خمار وې

چرې اوبهٔ اوبهٔ وې

چرې ښائست ښائست وې

چرې وطن وطن وې

او چرې کور کور وې

نن خو غمژنه ښکارې ----------

ډېره خفه خفه یٔ

ماتم ماتم دې تا کښې

سمه ژړا ده تا کښې

راځي خلق تماشې له ---------

تماشه شوې د جهان -------------

زلزلې --------------

دا دې څۀ اوکړۀ

ټول ژوندي  په زمکه ښخ شو

اميدونو سره لاړۀ --------- ارمانونو سره لاړۀ

ډېر کورونه يې تالا شو

ټول بچي يې تار په تار شو

ټول بچي يې خوار و زار شو

در په در خاورې په سر

فقيران شو فقيران ---------

ملنګان شو ملنګان -----------

زندګي څۀ شوه دلته --- !

آ -------- خلق څۀ شو دلته ---- !

په کومه لاړۀ ---------

هغوي په کومه لاړۀ

قصې د ژوند ئ

ټوله ختمه شوله ---------

هر څۀ تالا والا شو

اے د کشمیر زمکې !

اے د تاریخ زمکې ! اے د غمونو زمکې

د بالا کوټ زمکې !

د شهیدانو مور ئ - !

د شهیدانو زمکې !

ستا په نصیب دا وو

ستا په تقدیر دا وو

ستا به هم لیك دا وو

د شهیدانو زمکې !

اے د خوارانو زمکې ! ---------



# تهٔ حسين ئ محبوبه

ړېرې ------------

مودې اوشوې

محبوبا ----------- !

تهٔ چې تلې ----------

راوړېږې ----------

په زړهٔ کله کله ------------

اوښکې هم ------

را بهېږي له سترګو

زړهٔ مې هم ---------

کړي ژړا غلې غلې

زهٔ زړګې صبرومه

زهٔ زخمونه ګنډمه

مرهمونه پرې ږدمه

تسلي ورکومه ------------

محبوبا ---- !

ډېرې مودې اوشوې ---

که زهٔ مړ شمه --------------

خېر دې

در به نهٔ شم ----------

دیدار له

تهٔ حسین يې محبوبا !

تهٔ جمیل يې محبوبا !

او تهٔ لوې يې محبوبا !

زهٔ د تا د خنګ نهٔ یم

زهٔ د تا برابر نهٔ یم

داسې بنهٔ ---------- !

داسې بنهٔ ---------- !

زما مینه -----------

لېونۍ ----- لېونۍ ----------

زما مینه -------

سپېلنۍ سپېلنۍ -----------

دا ګناه ده زما

دا ګناه خو ستا نه !

چې د تا سره مینه

محبوبا -------- محبوبا --------- !

ډېر ستي ستي شومه

ډېر ستي ستي شومه

ډېرې مودې او شوې ----------

ډېرې ------------- مودې -------- او شوې

# ستا له مینې توبه !

محبوبا --!

بیا را نهٔ شې -----------

زړهٔ مې -------------

لړ لړ صبر شوې ------

چې مې نوم -----------

بیا وانخلې -------------

چې مسکا -----------

بیا او نهٔ کړې

مې په لورې -------

کاتهٔ هم او نهٔ کړې

ستا له مینې توبه !

ستا له حسن توبه !

لا تاویږي --------

مې سر

مې په روح ډېره سخته

مې په تن ډېره سخته

لا په هوش کښې هم نهٔ یم

لا تر اوسه بې خود

لا تر اوسه بې هوش

درکړو ما خپل ژوندون

در کړو ما تن او روح

خو تا سپك اوکتل -----------

د زړګي مينې ته -----------

مې د روح مينې ته ---------

تا خفه کړو ----------

مې روح --------

تا ازار کړو مې روح

خپله مينه

دې کبر ده ----------

خپل بنا ئست دې هم يوسه -------

هيڅ مې نهٔ دي پکار

بيا رانشې --

محبوبا --------- !

بيا رانشې محبوبا ------- !



# ښځه خپل خاوند ته !

مرګي ځما نه بوتلې

بیا کله به راځې؟

یوازې شوم پوازې --------

اوس زهٔ به څهٔ کومه

دا ستا د زړګي مینه

ځما کله هېرېږي ----------

د مینې ورځې شپې دې

ځما کله هېرېږي ---------

په تن کښې مې اور بل شو

وجود مې ټول سوزېږي

دا ستا عجیبه هجر !

په مرګ رانه جدا شوې

بیا کله به راځې ؟

راتلهٔ دې جوړې نشته

په چپه خلهٔ تهٔ لاړې

په پټو سترګو لاړې

دا څکه غلې غلې --------

څهٔ نهٔ وايې په ژبه ----------

څهٔ ووايه په ژبه !

دا زهٔ به څهٔ کومه

تا چا ته پرېښودمه

ما هم درسره بوځه

بل جهان ته --------

ژوندون راته ډېر ګران شو

د لوړو نه يرېږم

د تندو نه يرېږم

تورو شپو نه هم يرېږم

آفتونو نه يرېږم

د دردونو نه یریږم

ما هم درسره بوځه

ما مهٔ پرېږده یوازې

اے ملګریه ! د ژوند ! ----------

اے ملګریه د خوند ! ---------

انتظار به اوس د چا کړم

سودا به اوس د چا کړم

چې به راشي -------

عادتونو سره څهٔ کړم ؛

د رازونو سره څهٔ کړم ؛

ستا په غم به لېونی شم

خو ما هم درسره بوځه



# خپل وجود باندې نظر کړه

تهٔ انسان يې !

ته انسان يې !

لږ تهٔ پام کړه

نور څهٔ نهٔ يې -----------

هيڅ هم نهٔ يې -----------

خپل وجود باندې نظر کړه

خپل اعضاؤ ته و ګوره

ورځو شپو باندې نظر کړه

زمانو باندې نظر کړه

هر ذي روح باندې نظر کړه



په اول باندې نظر کړه

په آخر باندې نظر کړه

ويريږه له خپل ځانه !

دومره وازه خلهٔ تهٔ ولې !

دومره خیرې ګرېوان ولې !

دومره سر ویستلې ولې !

دومره تېز قدم دې ولې !

دومره سخا سوچونه ولې !

دومره لوړ خیالونه ولې !

نن به يئ ، سبا به نهٔ يئ !

خاورې لوټې خو څهٔ نهٔ وي ------------

سامانونه هم څهٔ نهٔ وي --------

رنګ و شرنګ هسې هوا ده

ظاهري نمود څهٔ نهٔ وي

هېڅ لويئ په دې کښې نهٔ ده

کهٔ دا وي ----------

او کهٔ دا نهٔ وي ----------

دومره وازه خلهٔ تهٔ ولې !

دومره خېرې ګرېوان ولې !

دومره سر ويستلې ولې !

دومره تېز قدم دې ولې !

دومره سخا سوچونه ولې !

دومره لوړ خيالونه ولې !

نن به ئ ، سبا به نهٔ ئ !

خاورې لوټې خو څهٔ نهٔ وي ------------

سامانونه هم څهٔ نهٔ وي --------

رنګ و شرنګ هسې هوا ده

ظاهري نمود څهٔ نهٔ وي

هېڅ لوئ په دې کښې نهٔ ده

کهٔ دا وي ----------

او کهٔ دا نهٔ وي ----------

ته انسان يې

بل څه نه يې

لږ نظر کړه ، لږ نظر کړه --------

ناداني د تا د زړه ده

کم فهمي د تا د خيال ده

دلته څو ورځې قيام دې

تلۀ دي بلۀ دي له دنيا نه

اے نادانه ---------- ؛

اے نادانه ---------- ؛

اے انسانه -------------- ؛

اے انسانه -------------- ؛



# ستا ستم کړه قصه ختمه

ستا فراق کړه ---------

مینه ختمه ---------

ستا ستم کړه

قصه ختمه ----------

ستا لویی کړه

مینه ختمه --------

زړهٔ مې تور شو ستا له مینې

زړهٔ مې تور ستا له دنیا شو

تهٔ جدا جدا کېدلې

په رښتیا رانه جدا شوې

د زړهٔ کور مې خوشې تشې --------

اوس مې هغه مینه نشته

اوس مې هغه شوق نشته

دا یو خوب د جنتونو --------

دا یو خیال د اسمانونو ----------

لاړې اووتې له زړۀ مې

لاړې اووتې له خياله -----------

اے محبوبه ------------ ؛

اے محبوبه ------------ ؛

مينه لاړه ------------

مينه لاړه -----------

تا رخصت کړه ځما مينه

بيا به مينه ، پيدا نۀ کړې

دا خو ښکلې ښکلې وخت وو ----

ځَه محبوبه ------ ؛

ځَه محبوبه ------ ؛

ستا ستم کړه

قصه ختمه -------------



# تالا کېږم

په ما اور بل شوي دے

ایرې ایرې کېږم

ستي کېږم ، ستي کېږم

خاورې کېږم ، خاورې کېږم

زهٔ سوزېږم ، زهٔ سوزېږم

زهٔ ورکېږم ، فنا کېږم

زهٔ ورکېږم ، تالا کېږم

ځان ته ګورمه په ښهو ----------

خفه کېږم ، زهٔ دردېږم

بې وسي ده ----------

بې وسي ده ----------

دغه ژوند ----------

دغه امید وو

لاهو کیږي لاهوکیږي

دنیا ورانه ورانه کیږي

ځما سترګې ترې پټیږي

زهٔ رژیږمه -------------

زهٔ ، ځمه --------

دغه ژوند ، دغه امید وو

دغه لیك دغه تقدیر وو

خاورې کیږم--------

خاورې کیږم -----------



# دعا

ماله ښکلې دنیا را ماله ښکلې --- ورځ ته را

ماله ښکلې ژوندګې را چې ازار نۀ کړم دنیا

د بدو ورځو مې ساتې خدایه ؛ ؛

د سپېرو ورځو مې ساتې خدایه ؛ ؛

بدو لمحو نه مې ساتې خدایه ؛

ستا د قهر نه یرېږم

تنګو ورځو دې یرېږم

توبه ستا له آفتونو

توبه ستا له غضبونو

توبه ستا له لوېه قهره

په ما سبورې شه خپل خدایه ؛

چې راځي دې رحمتونه -

# دعا

ماله ښکلې دنیا را ماله ښکلې --- ورځ تهٔ را

ماله ښکلې ژوندې را چې ازار نهٔ کړم دنیا

د بدو ورځو مې ساتې خدایه ؛ ؛

د سپېرو ورځو مې ساتې خدایه ؛ ؛

بدو لمحو نه مې ساتې خدایه ؛

ستا د قهر نه یرېږم

تنګو ورځو دې یرېږم

توبه ستا له آفتونو

توبه ستا له غضبونو

توبه ستا له لوېه قهره

په ما سبورې شه خپل خدایه ؛

چې راځي دې رحمتونه -

چې راځي دې نعمتونه --------

خپله خدايه --------

خپله خدايه --------

رحم اوکړې ----------

زۀ محتاجه ستا د رحم -------

زۀ لېواله ستا د رحم --------

ماله خپل رحم تۀ را ---------

ماله ښکلې ورځ تۀ را ----------



# څوک ګټي څوک بائيلي

تهٔ انسان

زهٔ انسان

تهٔ بنده يې د خدايې

زهٔ بندَه يم د خدايې

دوه لاس او دوه پښې

دي ستا ----------

دي زما ----------

دغه زړهٔ دې هم ستا

هم زما ------------

هم اول هم اخر دواړه يو

مسافر د يوې قافلې

ستا رازقَ دې الله

مې رازق دې الله

# څوک ګټي څوک بائيلي

ته انسان

زهٔ انسان

ته بنده يې د خدایٔ

زهٔ بندهٔ يم د خدایٔ

دوه لاس او دوه پښې

دي ستا -----------

دي زما -----------

دغه زړهٔ دې هم ستا

هم زما -------------

هم اول هم اخر دواړه يو

مسافر د يوې قافلې

ستا رازق دې الله

مې رازق دې الله

# خفه خفه

چرې هم -----------

زما په لوري مخه ، ------ نهٔ کړې

زما زړهٔ دې خفه کړې -----------

زما زړهٔ دې ازار کړې ---------

زما زړهٔ دې ژړولې ---------

زړهٔ نه ، نهٔ اوځي دلبرې ؛

ستا ستمونه ----------

ستا ظلمونه ------------

ژوند خو ژوند دے

خو په مرګ به مې هېر نهٔ شي

مې په قبر ، هم رانهٔ شې ------------ ؛

تهٔ په مړوني هم را نهٔ شې --------- ؛

زهٔ به مخ اړوم

تا نه --------

مرور یم تا لیږلي --------

تا تنها تنها لیږلي

تا خفه خفه لیږلي ---------

تا مې زړهٔ ډېر ازار کړې

خوا له رانشې دلبرې ؛ ------ ؛

بیا به ډېر ډېر ---------

افسوس اوکړې ----------- ؛

بیا به ډېره -----------

ژړا اوکړې ------------- ؛



## په مخ باندې رنړا کا

تندې دې لږ صفا کا

زړګې دې لږ صفا کا

په تریو تندې به څهٔ کړې

په تور زړګي به څهٔ کړې

خبرې تورې تورې

خبرې ستغې ستغې

خبرې دې خوږې کا

خبرې دې صفا کا

چلونه درنه هېر دې

پوهېږې په دنیا ښهٔ

چلونه دې زده کړي

په سپینه ږیره لاړې

زړګې -----------

دې صفا نهٔ کړو

تندې دې صفا نهٔ کړو

خبرې دې کړې

ازغي ، ازغي دې ژبه

په رونړ تندي دې ژوند کا

په خوږ زړګي دې ژوند کا

دا دوه ورځې ژوندون دے

هېڅ نهٔ کيږي په دې

قسمت کښې چې څهٔ دي

هغه به وي ------------

سينه کښې دې رڼړا کا

په مخ باندې رڼړا کا

ستا خالق دې الله

مې خالق دې الله

نو بيا څهٔ باندې بر

تهٔ په څهٔ باندې ښهٔ

کړمه سر ولې ټيټ

لو به ده دا دنيا ----------- ؛

څوک ګټي -----------

څوک بائيلي -----------

زما سر به وي ټيټ

په درشل د الله --------

هېڅ دي هېڅ ---------

دا هر څهٔ --------

هېڅ دي هېڅ دي

هر څوک ------------

زما يو لوئ الله ----

زما يو لوئ الله ----

# چې ساه مې خیژي

چې ساه مې خیژي

محبوبا ---------------- !

نو ته به ، نه راځې

خوا له به ، نه راځې -------------

ماله په ژوند چرته راغلې نه ئې

تاته زما مینه ، بلا ښکارېده

تا ما نه کرکه کړې

تا ما نه ځنګ کړې دے

تا ما ته سپك كتلي ---------

تا خو خندا کړې ده

تا خو جفا کړې ده

زما هېرېږي چرې ----------

چې ساه مې خېژي ته به نه راځې ------

هسې نه مړ شم

چې ژړا او نهٔ کړې -------

هسې نه ښخ شم

په مزار مې ، تهٔ ډیوې بلې نهٔ کړې !

ماله به نهٔ راځې -----------

ماله به نهٔ راځې -----------

دا اخري خبره -----

دا اخري خبره

محبوبا -----!

نهٔ به راځې -------------



# په خپلو سترګو ---

دا دنیا خو داسې نهٔ وه ----------

ما په خپلو سترګو ږبر -------

هر څهٔ لیدلي ------------

هغه هر څهٔ هر څهٔ نشته -------

هغه هر څهٔ چرته ورك دي

پته نهٔ لګي ----------

چې څهٔ شو -------------

خو ورك شوي راته ښکاري

فنا شوي راته ښکاري

مخکښې بله دنیا ګې وه

نور رنګونه -----------

زۀ پوهېږم ----------

چې بدلېږي -----------

زۀ پوهېږم چې ورکېږي

اوس څۀ بله دنيا ګۍ ده

اوس څۀ بل رنګې دنيا ده

دا دنيا ټوله بدلېږي

دا رنګونه ټول ختمېږي

ټول ورکېږي ----------

فنا کېږي -------------

# مې په خاورو تسلي کړه !

چې په یاد کښې دې زهٔ راشم --------

چې زما ارمان ----------

تهٔ اوکړې ---------

چې دې زړهٔ راپسې ډک شي

چې دې زړهٔ راپسې خوږ شي

چې مې مينه ------------

در په یاد شي

چې دې یاد ډېر بې قرار کړي

چې زما پسې پرېشان شې

دې دنیا کښې چې تنها شې

زړهٔ دې تنګ له دې دنیا شي

چې له خلقو -----------

بې نوا شې

د منونو خاورو لاندې ---------

او د کلکو کاڼو لاندې -----

زۀ هر څۀ محسوسومه -----------

مرګې نشي ختمولې ----------

د چا مینه

ستا په لورې -----------

به زۀ ګورم

بیا تۀ مینه کړه له خاورو --------

بیا خبرې کړه له خاورو --------

مې بیا خاورو لره راشه

مې په خاورو تسلي کړه

مې په خاورو زړۀ قرار کړه

# اے زما د مدیني محبوبا -- !

اے زما د مدیني محبوبا -- !

وایم چې درشم ستا په لوري

دیدن د پاره -------

وایم چې درشم ستا وطن ته

وصال د پاره -----------

وایم چې درشم ستا کوڅو له

دیدار د پاره ----------

د تا په خوا کښې غلې کښینم

دیدن اوکړمه ----------

دا ستا دیدن زما ارمان دې

دا ستا دیدار زما ارمان دې

دا اورې سترګې زۀ مړې کړم

دا ترې سترګې زۀ مړې کړم

د مدیني محبوبا ------ !

محبوبا ------- !

خبر دے خبر دے

بیا مې خلې لره راشه

خبر دے خبر دے

بیا مې قبر لره راشه ----------

خبر دے خیر دے

بیا مې خاورو لره راشه

لږ مې کیښنه د زړهٔ خوا کښې

لږ مې کیښنه --------

د سر* لور ته

څهٔ خبرې راته اوکړه

مې په خاورو تسلي کړه

مې په خلې زړهٔ قرار کړه

زهٔ دې هغه --------

محبوبا یم --------

په نقابونو کښې اے پټ محبوبا !

په ګنبدونو کښې اے پټ محبوبا !

تورو پردو کښې زما پټ محبوبا !

ماته پردې لرې که --------

چې ستا ديدن اوکړمه ----------

چې ستا ديدار اوکړمه ---------

تاله راغلې د عجم نه يمه

اے محبوبا - !

اے زما د مدينې محبوبا --- !

نن زۀ راغلې ستا په در يم

نن زۀ راغلې ستا کوڅو له

له ډيره لرې وطن ---------

زۀ مسافر د بل وطن يم

اے محبوبا -- !

د مدينې محبوبا

نن ماته مخ اوښايه

چې ستا دیدار اوکړم

بغیر دیداره --------

بغیر دیداره ---------

دې زهٔ عجم ته نهٔ ځم

ستا جدائ ده ډېره ګرانه

مړ به شمه ----------

ستا له هجرانه ----------

اے محبوبا ----- !

اے زما د مدینې محبوبا --- !

ماله دیدن راکړه ----------

ماله دیدار راکړه ----------

دا ستا لیدهٔ زما ارمان دے

اے زما د مدینې محبوبا ------------ !



تا په سترګو کړې خبرې

ما په سترګو کړې خبرې

زۀ په تا نۀ مړېدلم

تۀ په ما نۀ مړېدلې

پوهېدمه محبوبا - !

اے د لارې محبوبا --- !

تا زۀ پرېښودم په لار کښې

لږ ساعت کښې شوې جدا ------------

تۀ په کومه لورې لاړې ------------

دا تۀ کوم کلي ته لاړې -------

تۀ په کومو کوڅو لاړې -----------

کور دې کوم ځاې محبوبا ---- !

لږ ښا ئېلې به دې کور وو

لږ ښائېلې به دې کلې ----------

زۀ دې ټول عمر مهجور کړم

زۀ به څۀ کړم محبوبا -----------

په کوڅو کښې به دې ګورم ----------

تا په لارو کښې به ګورم -------------

تصور کښې به دې ګورم -----------

انتظار به کړمه څنګه ----------

تش خيالونو کښې به اوسې

تش يادونو کښې به اوسې

هېر به مې نۀ شې -------------

زما د لار محبوبا --------- !

د لږ ساعت محبوبا --------- !

اے ------------------------

زما ورك محبوبا ------------- !

# هسې هسې

ما وې دا دنيا زما ده

ما وې دا هر څۀ زما دي

دواړه لاسه مې خالي دي

زما هيڅ په لاس کښې نشته

ما وې دا هر څۀ زما دي

محبوبا خو هم زما دے

ښکلې حسن يې زما دے

تورې زلفې يې زما دي

ښکلې حسن يې زما دے

تورې زلفې يې زمادي

زما لاس کښې جانان نشته

زما لاس کښې زلفې نشته

زما لاس کښې دنيا نشته

نهٔ دنيا شته ----------

نهٔ جانان شته -----------

دواړه لاسه مې خالي دي

هسې هسې وخت تېرېږي

هسې هسې ژوند تېرېږي

هسې هسې سبا کيږي

هسې هسې بېګاه کيږي

په ارمان ارمان به مړ شم

په ارمان ارمان به ورک شم



## ما ملنګ نه واوره ------

ما فقیر نه واوره

ما مهٔ ازاروه ----

ما ملنګ نه واوره

ما مهٔ ازاروه -----

ما پرېږده خپلې لار ته

چې ځمه په خپل لوري

چې در په در سوالونه کړم

چې در په در خبرونه کړم

زهٔ درته څهٔ نهٔ وایم

ماته تهٔ ---------

څهٔ مهٔ وایه

څهٔ غوارې له مانه

زهٔ فقیر د لارې

زهٔ فقیر د لارې ----------

ګي ازارونه

زار به شي له مانه

زهٔ فقير ، فقير يمه

زهٔ ملنګ ، ملنګ يمه

تهٔ شاه ، كهٔ ئ -----------

نو ئ به ------------

ما ګدا نه واوړه

ما مهٔ ازاروه -----------

ما ملنګ نه واوړه

ما مهٔ ازاروه -------------



لګي ازارونه

ازار به شي له مانه

زهٔ فقير ، فقير يمه

زهٔ ملنګ ، ملنګ يمه

تهٔ شاه ، کهٔ ئې -----------

نو ئې به ------------

ما ګدا نه واوړه

ما مهٔ ازاروه -----------

ما ملنګ نه واوړه

ما مهٔ ازاروه -------------



# اے زما لارو کوځو-------- !

اے زما لارو کوځو --------- !

اے زما د کلي زمکې --------- !

اے زما د کندي زمکې ----- !

مې وجود د تا نه جوړ دے

ستا په مخ مې ساه اخیستې

زۀ په تا باندې پیدا شوم

ما په تا خړپوسې کړيَ

ما په تا دي لوبې کړي

ستا فضا کښې مې ژړلي

ستا فضا کښې مې خندلي

ورځې شپې -------

مې ستا لیدلي

ستا خوارۀ -----------

مې ډېر خوړلي

زړۀ مې نۀ کېږي له تا نه

چې په بله ------------

لوري لاړې

خو مجبور يمه اے زمکې -------- !

څوك مې نۀ پرېږدي -----------

ستا خوا کښې

چې دا دوه ورځې ژوندون ----------

ستا په غېږ کښې ----------

غلې تېر کړم

ستا د لارو نه زۀ ځمه ---------

ستا کوڅو نه خو زۀ ځمه

خو هېرېږې مې تۀ چرته

ستا وختونه مې په زړۀ دي

ستا نقشونه مې په زړۀ دي

ستا يادونه مې په زړۀ دي

اے زما د کلي زمکې --------------



# عشق خنګه ؛ حسن خنګه --------- !

مينه ولې شوه بې سوزه

حسن ولې شو بې نيازه

نهٔ يارانو کښې يارې

نهٔ په رور کښې رورولي

نهٔ خپلوانو کښې خپلوي

نهٔ وارهٔ هغه وارهٔ

او نهٔ لويئ دي هغه لويئ

نهٔ مردان هغه مردان

نهٔ زنان هغه زنان

خدايه څهٔ په مينه اوشو

خدايه څهٔ په وفا اوشو

خدايه څهٔ په زړونو اوشو

په کوځه د يار کښې نشته

خوشبوياني د جنت

د سبا په باد څهٔ اوشو

خوشبوئ د سبا څهٔ شوه

# اے زماني -------- !

په رو رو ځه -------- !
په مزه مزه ځه --------- !
لا ځواني ده ------------
چې لذت د ژوندون واخلم
چې څهٔ ووينم په سترګو --------
چې زهٔ مينه کړم له ښکلو
ښکلې ښکلې دنيا ووينم
اے ټکرو د ژوندون ----------- !
اے غمونو د ژوندون -------- !
لږ په شا شی
چې مزې له وخته واخلم
چې مې ذوق د ګناه لاړ شي
چې توبه ، توبه شم رب ته
اے زماني ------- !
رو رو ځه ----------- !
په مزه مزه ځه --------- !

د ژوندون روحونه لاړهٔ

د ژوندون پایه ولاړه

نبض لاړ د کائیناتو

آ ---------------

ګرمي د عشق څهٔ شوه

لېونتوب د میني څهٔ شو

فریادونه د سبا شو بې اثره

ستا خدایٔ غواړمه خدایه ---- !

خدایه څهٔ شوے

دا څهٔ وشو ----------- !

په وفا ، په حسن ----

دا چلونه وشو

عشق څنګه ----------؟

حسن څنګه ------- ؟

زړونه څنګه --------- ؟



# د ژوندون په میکده کښې

چالاکان ---------------

مکاران -------------

حریصان -------------------

له دهوکې ډک انسان ------

بې تهذیبه بد زبان -----------

په زړهٔ یو ---------------

په ژبه بل ----------

مینه نشته -----------

خلوص تلې ---------

رحم نشته ، وفا نشته

مېلمسبتیا شوه د مطلب

عزت تش د ویرې نوم

عزت تش د طمعې نوم

د هستی په مېخانه کښې

زهٔ نشه نشه یه مینه

زرهٔ مې دک له مینې ولې؟

مې سینه کښې خلوص ولې؟

دومره ډېر دردونه ولې؟

دومره رحم ، وفا ولې؟

چې مې اوښکې ځي له سترګو

ټول ځیګر مې وینې وینې

هر انسان مې زړهٔ کښې دننه

هر یو غم ئې زما غم ----------

څنګه پټې سترګې تېر شم

څنګه غلې غلې تېر شم

دا دنیا څنګه دنیا ده

زهٔ به کو مه لورې لاړ شم

خپله خدایه ---------------

خپله خدایه ---------------

## خصوصی مننه

"په کنج پښتو" نوم کتاب کښې دی چې څوک د بل احسان او نیکی منی دا ډېره ښه خبره ده۔ حامد علی حامدؔ زما کتاب په خپل لاس لیکلې دے او په چاپ کښې ئې د زړهٔ د تل مدد کړې دے۔ حامدعلی حامدؔ چې اهل دل دے، باضمیره دے د پښتو شاعر هم دے د پښتو ژبې سره بې کچه مینه لری، غلې غلې ښکاری خو د زړهٔ دنیا ئې ژوندی ده۔ زهٔ د حامد علی حامدؔ د زړهٔ د تل نه شکریه ادا کوم چې کتاب ئې رابښکاره کړو۔ دا څو کرښې د یاد ګیرنې له پاره دی۔

په درناوی ایم. طارق سحر

۱۴ اکتوبر ۲۰۰۶

د کمل ورځ



نوم: ایم طارق سحرؔ

پته: محله جان خیل کلي شاه ډهنډ
ډاك خانه لوندخوړ، تحصیل تخت بهائی
ضلع مردان

چاپ کتابونه:

۱۔ ددشت لا روي

۲۔ ژوند یو سراب

۳۔ یادونه او دردونه

۴۔ خالی لاسونه

**ایم طارق سحرؔ**

د پښتو ادب په شاعرۍ کښې د ژورنظر او ژور احساس خښتن دے هاغه څۀ محسوسوی چې حقیقت وی د شاعرۍ مضمون ئې لویه معنٰی لری

**ډاکټر راج ولی خټک**

پښتو اکیډمی پېښوریونیورسټی